ورځپاڼه
# هېواد

مؤسس: عبدالرووف بېنوا | د تاسیس کال ۱۳۲۸ لمریز

شنبه د شعبان المعظم ۹مه ۱۴۴۶ق کال | د سلواغې ۲۰ مه ۱۴۰۳ ل کال | د فبروري ۸ مه ۲۰۲۵م کال | خصوصي ګڼه ۵۳۸ مه | پرله پسې ګڼه ۶۲۸ مه ، اتمه دوره

د مخابراتو او معلوماتي ټکنالوژۍ وزارت:
## هېڅ راز سیستمونه نه دي هک شوي

د هېواد د مخابراتو او معلوماتي ټکنالوژۍ وزارت، په ټولنیزو شبکو او د یو شمېر مغرضو رسنیو له لوري د نامؤثقو او ناسمو راپورونو د خپرېدو په غبرګون کې، ورمه ورځ د یوې اعلامیې په خپرولو سره ویلي چې د افغانستان هېڅ راز سیستمونه نه دي هک شوي.د یاد وزارت په اعلامیه کې راغلي دي: (( په ټولنیزو رسنیو کې یو شمېر اسناد لاس په لاس کېږي ،چې ګواکې د افغانستان اسلامي امارت د ګڼو وزارتونو او ادارو اسناد لیک شوي دي. د خپلو هېوادوالو د ډاډ لپاره باید وویل شي چې هېڅ راز سیستمونه نه دي هک شوي؛ زموږ ټول سیستمونه خوندي دي او هېڅ ستونزه پکې نشته.))د مخابراتو وزرات د معلوماتو له مخې؛ کوم اسناد چې په ټولنیزو رسنیو کې لاس په لاس کېږي، ډېر یې په عام ډول د لاسرسي وړ او د تېرو څو کلونو دي ،چې په متواتر ډول راټول شوي او د عامه اذهانو د مغشوشولو لپاره په دې موخه چې له سیستمونو یې را اخیستي، نشر ته سپارلي دي. اعلامیه زیاتوي ،چې رسنیزو شویو اسنادو ته په کتو، ډېر یې په هغو برخو پورې اړوند دي چې تر دې دمه د یادو اسنادو لپاره کوم ځانګړي سیستم نلري. ۳مخ

د ترکیې د پارلمان رئیس:
## ټرمپ باید د غزې په اړه د افغانستان له تاریخ څخه پند واخلي



د ترکیې د پارلمان رئیس نومان کورتولموش د امریکا د منځني ختیځ پر پالیسۍ، په ځانګړې توګه د غزې په تړاو د ټرمپ پر وروستي پلان سخت انتقاد کړی دی.ده امریکایانو ته په اشارې ویلي: (( هغه کسان چې په ویتنام، افغانستان او عراق کې ناکام شوي، حق نه لري چې منځني ختیځ بلې فاجعې ته داخل کړي.))کورتولموش زیاته کړې، چې ترکیه د سولې د حللارې ملاتړ کوي؛ خو د ناعادلانه پالیسیو پر وړاندې به خپل غبرګونونه جاري وساتي.ده د امریکا له حکومت څخه غوښتنه کړې، چې خپل دریځ بیا وڅېړي او له تېرو ناکامیو څخه عبرت واخلي، ځکه چې هر ډول بهرنۍ مداخله یوازې د سیمه ییزو کړکېچونو د زیاتوالي سبب کېږي.ترکیې تل د فلسطین د خلکو د حقونو ملاتړ کړی دی او د اسرائیلو پر وړاندې یې په نړیواله کچه سخت غبرګونونه ښودلي دي.کورتولموش د خپلو خبرو په پای کې ویلي، چې ترکیه د منځني ختیځ د ټولو هېوادونو لپاره د سولې او ثبات د رامنځته کولو لپاره هر اړخیزې همکارۍ ته ژمنه لري.

## نیمروز کې ۱۰۰ بستریز روغتون ګټې اخیستو ته وسپارل شو

د نیمروز ولایت ۱۰۰ بستریز روغتون د یو لړ ځانګړو مراسمو په ترڅ کې د اسلامي امارت د اطلاعاتو او فرهنګ همدې ولایت د ملکي او نظامي مسئولینو او علماء کرامو په شتون کې رسماً ګټې اخیستو ته وسپارل شو. د اطلاعاتو او



او د عامې روغتیا د وزیرانو، د نیمروز او هلمند د والیانو، د فرهنګ وزارت سرپرست ملا خیرالله خیرخواه ۳مخ

## میدان وردګو کې د وسپنې ویلې کولو فابریکه جوړېږي

د میدان وردګو ولایت د مرکز میدان ښار په کوټه عشرو سیمه کې د وسپنې ویلې کولو د یوې سترې فابریکې د جوړېدو لپاره هندي پانګوال انجنیر لوکیش کومار او د میهن ستیل مسئولینو د دې ولایت له والي قاري بختیار معاذ سره کتلي دي.په دې لیدنه کې هندي پانګوال د یادې فابریکې پر اهمیت هر اړخیزې خبرې وکړې او ویلي یې دي پلان لري، چې په میدان وردګو ولایت کې د وسپنې ویلې کولو په برخه کې شاوخوا ۲۰۰ میلیونه ډالره پانګونه وکړي.د کومار په وینا په جوړېدونکې فابریکه کې به خامه وسپنه په نړیوالو معیارونو برابره پروسس شي، چې په ورځنۍ ډول به ۱۲.۵ ټنه تولید ولري او زرګونو کسانو ته به په



کې د کار زمینه برابره شي.په ورته وخت کې د میدان وردګو والي قاري بختیار معاذ د یادو پانګوالو د هڅو ستاینه وکړه او ویې ویل، چې د ولایت مقام او اړوندې ادارې به د دوی د پانګونې لپاره هر ډول اسانتیاوې برابرې کړي او همکارۍ ته چمتو دي.د یادونې وړ ده چې په دې وروستیو کې د ولایت د مقام په هڅو ګڼ شمېر پانګوال دې ولایت ته راجذب شوي او په میدان وردګو کې د بېلابېلو برخو تولیدي فابریکې جوړې شوي دي.

د ازبیکستان سفیر:
## د افغانستان او ازبیکستان راکړه ورکړه له یو میلیارد ډالرو اوښتې

په افغانستان کې د ازبیکستان سفیر وایي: د کابل او تاشکند تر منځ د سوداګرۍ کچه لوړه شوې ده.اېبک عثمانوف زیاتوي، په تېر میلادي کال کې د افغانستان او ازبیکستان تر منځ د سوداګریزې راکړې ورکړې ټول ارزښت ۱ اعشاریه ۱ میلیارد ډالرو ته رسېدلی و. په کابل کې د ازبیکستان سفیر، اېبک عثمانوف وایي: د دواړو هېوادونو د مشرانو، د ازبیکستان د ولسمشر شوکت میرضیایف او د اسلامي امارت د مشرتابه له برکته، د وزارتونو د مشرانو، د



سوداګرو د فعالې همکارۍ او د دوی د هڅو او تحرک له امله، د تېر کال په ترڅ کې د دواړو هېوادونو د سوداګرۍ مالي ګردش له ۱.۱ میلیاردو ډالرو څخه زیات شوی دی.د ازبیکستان سفیر یادې خرګندونې په کابل کې د امیر علي شېرنوایي او ظهیر الدین محمد بابر د کارکړنو د ارزونې په موخه غونډه کې وکړې.

## د مولانا جلال الدین د پلار خانقاه بیارغول کېږي

د بلخ د اطلاعاتو او فرهنګ رئیس مولوي محمدالله ضرار، د ترکیې د تیکا ادارې د مرکزي اسیا او قفقاز د پروژو رئیس ډاکټر علي اوزګون اوزترک او د دې ادارې تخنیکي پلاوي د مولانا جلال الدین محمد بلخي د پلار له خانقاه څخه لیدنه وکړه.هغوی د خانقاه د تاریخي ودانۍ، شاوخوا ساحو څخه لیدنه کړې او د سیمې له خلکو سره یې هم کتلي دي.مولوي ضرار ټینګار کړې چې دا تاریخي ابده به له نړیوالو معیارونو سره سمه و رغول شي. ۳مخ

مولوي قدرت الله جمال:
## غزني کې جهادي موزیم به ډېر ژر پرانیستل شي

د اطلاعاتو او فرهنګ وزارت د ګرځندوی، مالي او اداري چارو معین مولوي قدرت الله جمال او مل پلاوي غزني ته د خپل سفر په بهیر کې، د دغه ولایت له مرستیال حافظ عبدالرشید عمري او د اطلاعاتو او فرهنګ له رئیس ملا حمیدالله نثار سره کتلي دي.په دې کتنه کې، مولوي قدرت الله جمال ویلي ،چې په غزني کې د جهادي موزیم چارې بشپړې شوي او په نږدې راتلونکې کې به پرانیستل شي.ده زیاته کړې ده: ((هڅه کوو چې د غزني د ټولو لرغونو سیمو ساتنه وکړو او د هغو د رامنځته کولو لپاره ډېرې هڅې شوي او لا هم روانې دي.)) د




بیارغونې په برخه کې جدي ګامونه واخلو؛ د هېواد په کچه د سیلانیانو لپاره د اسانتیاوو مولوي جمال په وینا، اوسمهال د غزني په جهادي موزیم کې د بېلابېلو جهادي ۳مخ

## خوست کې د اوبو رسولو ۳ شبکې ګټې اخیستو ته وسپارل شوې

د خوست ولایت د کلیو د بیارغونې او پراختیا ریاست مسئولین وایي، چې د دغه ولایت په مرکز متون ښار کې د څه باندې ۹ میلیونه افغانیو په لګښت د اوبو رسولو د دریو شبکو په ګټې اخیستنې سره څه باندې ۵۰۰ کورنیو ته د څښاک اوبه برابرې شوي دي.سرچینې باختر اطلاعاتي آژانس ته ویلي، چې د دغه ولایت د مرکز متون ښار په دریو سیمو کې د (ان. سي. اي) موسسې په مالي ملاتړ د ۹ میلیونه ۵۵۹ زره ۳مخ

## د کار او ټولنیزو چارو وزیر د ناروې د کډوالو ادارې له رئیس سره وکتل

د کار او ټولنیزو چارو وزارت وایي، ملا عبدالمنان عمري په افغانستان کې د ناروې د کډوالو ادارې له رئیس نیل ټورنر او مل پلاوي سره لیدنه کړې.په دې لیدنه کې د کار او ټولنیزو چارو وزیر ملا عبدالمنان عمري غوښتنه کړې، چې په افغانستان کې د ټولنیز خوندیتوب په برخه کې خپل فعالیتونه ځانګړي کړي او خپلې چوپړتیاوې د لرې پرتو سیمو تر اړمنو هم ورسوي.د کار او ټولنیز چارو وزارت ویاند



سمیع الله ابراهیمي ویلي: د ناروې د کډوالو ادارې رئیس ژمنه کړې، چې د پخوانیو فعالیتونو په دوام غواړي په راتلونکې کې هم د دغه وزارت د پالیسۍ مطابق خپل خدمتونه وړاندې کړي. ۳مخ

## در غور ۳۷ مکتب و مدرسه بازسازی گردید



مسئولین در ریاست معارف غور، می‌گویند که این ریاست در ۱۰ ماه گذشته ساختمان ۳۷ مکتب را بازسازی کرده است.حفیظ الله محفوظ، رئیس معارف غور، می‌گوید که افزون بر بازسازی این شمار مکتب‌ها، دو مدرسه و یک دارالحفاظ نیز به گونه اساسی بازسازی شده است.او می‌افزاید: (( ریاست معارف شماری از مکتب‌ها و مدرسه‌های دینی را که نیاز به بازسازی داشت به طور اساسی بازسازی کرد و دانش‌آموزان از آن استفاده می‌کنند.))به گفته رئیس معارف غور، بازسازی این شمار مکتب‌ها و مدرسه‌های دینی بیش از هشت میلیون و ۵۰۰ هزار افغانی هزینه برداشته است.بر اساس آمار ارائه شده از سوی ریاست معارف غور، در این ولایت اکنون بیش از ۸۴۰ مکتب وجود دارد که بخش زیادی از آنها دارای ساختمان‌های کهنه یا بدون ساختمان اند.

## د لوګر ۴ ولسوالیو ته وارداتي برښنا غځول کېږي



د لوګر د برښنا ریاست چارواکي وایي ،چې د دې ولایت محمداغې، بره‌کي برک، خوشۍ او څرخ ولسوالیو ته د ازبیکستان وارداتي برښنا غځول کېږي.د دې ولایت د برښنا رئیس مولوي فهیم منصور پل‌علم کې خبریالانو ته ویلي: د برښنا عمومي ریاست له لوري د مرکز پل‌علم لرې پرتو سیمو او ولسوالیو ته وارداتي برښنا غځول کېږي.نوموړي وویل: ۳مخ

# غزه کې د ویجاړۍ کچه د دویمې نړیوالې جګړې پرمهال له ویجاړو شویو ښارونو سره پرتله کېدای شي

د غزې د اشغال په اړه د امریکا د ولسمشر ډونالډ ټرمپ له جنجالي څرګندونو وروسته، نیویارک پسټ راپور ورکړ، چې د غـزې په ترانګـه کې د ویجاړۍ کچه یوازې له هغو ښارونو سره پرتله کېدای شي، چې د دوهمې نړیوالې جګړې پرمهال ویجاړ شوي وو.په یوه راپور کې چې لاوړمه ورځ خپور شو، رسنۍ د ملګرو ملتونو او نړیوال بانک له قوله ویلي ،چې د غزې ۶۹ سلنه ودانۍ، چې له ۲۴۵۰۰۰ څخه ډېر کورونه پکې شامل دي، د سیمې د ۱۵ میاشتو بمباریو په جریان کې ویجاړ شوي دي او اټکل کیږي ،چې یوازې د جګړې په لومړیو څلورو میاشتو کې زیانونه ۱۸.۵ میلیاردو ډالرو ته رسېدلي دي.د راپور له مخې، په غزه کې نږدې دوه میلیونه فلسطینیان د اوربند له هوکړې وروسته د کنډوالو له ګنې ګونې ډک کمپونو او سرپناه پرېږدي، ترڅو بالاخره خپلو کورونو ته ورستانه شي، خو له ۱۵ میاشتو ظالمانه جګړې وروسته، دوی ګوري ،چې د دوی له کورونو او ګاونډیو څخه پرته له ایرو او کنډوالو څخه بل څه نه دي پاتې.کارپوهان وایي ،چې د غزې په ترانګه کې د ویجاړۍ کچه یوازې له هغو ښارونو سره پرتله کیدای شي چې د دوهمې نړیوالې جګړې پرمهال ویجاړ شوي وو. له اوریګون پوهنتون څخه واندي هوک واشنګټن پسټ ته ویلي، چې (( په شمال کې د بمباری لوړه کچه بې ساري ده.)) ده وویل: (( د هغه زیان او ویجاړۍ سرعت سره چې موږ لیدلی دی د پرتلې وړ هیڅ شي نشته.))د ملګرو ملتونو سرمنشي «انتونیو ګوتریش» هم په غزه کې د ویجاړۍ کچه ”له ټولو بده ویجاړي“ بللې ده. اټکل کیږي ،چې حتي له ۱۰۰ لاریو سره چې بشپړ وخت کار کوي، د کثافاتو پاکول به له ۱۵ کلونو څخه ډېر وخت ونیسي. د منځنـي ختیځ لپاره د ټرمپ استازي «ستیف ویتکاف» هم ویلي دي چې په غزه کې د جګړې د ویجاړۍ بیا رغونه به له لسو څخه تر پنځلسو کلونو پورې وخت ونیسي.خو ډونالډ ټرمپ د تېرې سه‌شنبه په ورځ د اسرائیلو له لومړي وزیر بنیامین نتنیاهو سره د خپلې کتنې پر مهال ویلي،چې (( موږ د غزې کنټرول په لاس کې اخلو او موږ په قاطعانه توګه عمل کوو.)) هغه دا هم وویل ،چې فلسطینیان باید بل ځای کې مېشت شي او امریکا به غزه بیا جوړه کړي. د هغه څرګندونې له پراخو نړیوالو غبرګونونو سره مخ شوې.



## سرلیکنه




# د فلسطینیانو د بېځایه کولو طرحه؛ یو غیرعادلانه تصور

د امریکا ولسمشر ډونالډ ټرمپ یو ځل بیا ګواښ کړی چې د غزې کنټرول به د جګړې له پای ته رسېدو وروسته د اسرائیلو له لوري متحدو ایالتونو ته وسپارل شي. دا څرګندونې که څه هم د عملي کېدو وړ نه دي او د ملګرو ملتونو، عربي هېوادونو او د فلسطیني مقاومت له لوري غندل شوې، خو بیا هم یوه غیرعادلانه، غیرانساني او ظالمانه طرحه ده چې باید نړۍ یې پر وړاندې پر یوه واضح دریځ ودرېږي.د فلسطینیانو جبري بېځایه کول او د دوی د هستوګنې حق تر پښو لاندې کول نه یوازې د نړیوالو اصولو خلاف دي، بلکې سیمه‌ییز ثبات، عدالت او بشري ارزښتونو ته جدي ګواښ هم پېښوي. د دې طرحې عملي کېدل، که هر څومره غیرواقعي ښکاري، د بشریت پر ضد ښکاره ظلم دی، چې د «قومي تصفیې» مفکوره پیاوړې کوي او د فلسطینیانو د هویت او ازادۍ د حق له منځه وړلو ته زمینه برابروي.

نړیواله ټولنه، په ځانګړې ډول اسلامي هېوادونه، باید د فلسطین د ازادۍ لپاره یوازې پر لفظي غندنو بسنه ونه کړي، بلکې د یو خپلواک فلسطیني دولت د جوړولو لپاره دې عملي ګامونه واخلي. فلسطینیان چې له لسیزو راهیسې د خپل حق لپاره قربانۍ ورکوي، د نړیوالې ټولنې له خوا د ناورین قربانیان نه، بلکې د خپلې ازادۍ مستحق وګړي دي. د دوی قربانۍ باید بابېزه ونه ګڼل شي، بلکې د هغوی د حقوقو د تامین لپاره باید نړیوال قوانین عملي شي.

که نړۍ نن د دې طرحې پر وړاندې خاموشه پاتې شي، دا به یوازې د فلسطیني ملت پر وړاندې یو ستر خیانت نه وي، بلکې د نړیوال عدالت او ثبات لپاره به هم خطرناک ګواښ رامنځته کړي. اوس د دې وخت رارسېدلی چې د بشریت مدافعین د فلسطیني ملت د مشروعو حقوقو د دفاع لپاره یوه واضحه، متحده او عملي تګلاره غوره کړي.

# دین مبین اسلام همیشه به پیروان خود هدایت می دهد که با همدیگر زندگی مسالمت آمیز داشته باشند



**عزیزی**

دین مبین اسلام یگانه دینیست که در آن همه خیر ، شر و حیات بشریت به وضاحت بیان گردیده و از حیث منبع ،مصدر،موضوع و هدف بر مبنای حق و عدالت استوار بوده ،مصدرش وحی ،دستورش قرآن،حافظش رحمان و پیامبرش رحمت عالمیان است.دساتیری که در اسلام آمده همه اش برای خیر و سعادت بشر بوده و جهان بشریت را به وفاق و وحدت ملی و استحکام پایه های اسلامیت که در آن سعادت آنان مضمراست دعوت می نماید. خداوند متعال در قرآن عظیم الشان برای مؤمنان هدایت می دهد که ،به ریسمان خدا(قرآن عظیم الشان )چنگ بزنید واز هم متفرق نگردید.این آیت مبارک چنان به صراحت بشر را به وفاق و وحدت ملی هدایت و دعوت نموده که هیچگونه صراحتی بیشتر از این ارائه شده نمی تواند.روی همین ملحوظ است که پیروان دین مبین اسلام همیشه کوشش می نمایند تا مطابق به دساتیر و هدایات قرآن و سنت نبوی ((ص)) وحدت و مساوات را میان هم قایم نموده و در ایجاد مشکلات زندگی به معاونت همدیگر رسیدگی نمایند.چنانکه دین مبین اسلام با ارشادات واضح خود پیروانش راهدایت فرموده تا با ادای عشر و زکات مال،صدقه ،خیرات،احسان با همنوعان و همکاری دیگران رسیده و بر یکدیگر کمک نمایند.از همین جاست که پیامبر گرامی ((ص))ارشاد فرموده اند که بهترین مردم کسی است که خیرش به دیگران برسد. ازلحاظ دینی کمک و احسان نمودن برای همنوعان خود در ایجاد همدلی و وفاق ملی و همینگونه وحدت کلی و ملی تاثیر بسزای را در میان انسانها به میان آورده،کدورت،شرارت و دشمنی را از میان برمی دارد.اسلام خواهان آنست که مسلمانان پاکترین و بهترین شیوه زندگی را در روی زمین داشته باشند، زندگی یی که شرک و بت پرستی در آن نباشد و در آن عبادت را تنها برای کسب رضای خداوند مهربان انجام دهند ص۳

# د امیر علي شېر نوايي او ظهیرالدین بابر د فرهنګي او علمي هڅو په یاد غونډه جوړه شوه

کابل کې د ازبیکستان سفارت په همکارۍ، ورمه ورځ د امیر علي شېر نوايي او زهیرالدین بابر د علمي او فرهنګي هڅو په یاد، غونډه ترسره شوه. په دې غونډه کې د اطلاعاتو او فرهنګ وزارت د هنر او کلتور معین مولوي عتیق الله عزیزي، په کابل کې د ازبیکستان سفیر ایبک عثمانوف او ګڼ شمېر ادیبانو، شاعرانو، لیکوالو او ځوانانو ګډون کړی و. په یاده غونډه کې د اطلاعاتو او فرهنګ وزارت د هنر او کلتور معین، د افغانستان او ازبیکستان ترمنځ ګډ فرهنګي او علمي میراث خورا بډاي او ژور وباله او ویلي یې دي چې دواړه هېوادونه د اسلامي تمدن په زاړه عصر کې د علم، ادب، فلسفې او هنر په برخو کې سترې لاسته راوړنې لري.د ده په وینا:د دواړو هېوادونو ترمنځ تاریخي اړیکو د یوې مهمې برخې په توګه او د امیر علي شېر نوايي او زهیرالدین بابر په شان سترو شخصیتونو د دواړو فرهنګونو په پراختیا کې مهم رول درلود.

مولوي عزیزي زیاته کړه ،چې د افغانستان او ازبیکستان مشترکات د شعر، ادب، او فلسفې په برخو کې نه یوازې له تېر څخه تر نن ورځې پورې پیاوړي پاتې شوي؛ بلکې په عصري دور کې یې هم د دوه اړخیزو همکاریو په پراختیا کې مرسته کړې ده.دغه راز، په کابل کې د ازبیکستان سفیر ویلي چې هېوادیې د تاریخي او فرهنګي اړیکو پر بنسټ، له افغانستان سره په دې برخه کې ژورې اړیکې لري او د دواړو هېوادونو د ګډ فرهنګي میراث ساتنې او پراختیا ته به ځانګړې پاملرنه وکړي.په غونډه کې یو شمېر شاعرانو او ادیبانو هم د یادو شخصیتونو د علمي او فرهنګي کړنو په اړه خپلې مقالې له ګډونوالو سره شریکې کړې.



# د امریکا له خوا پیل شوې سوداګریزه جګړه ګټونکی نه لري

د امریکا ولسمشر ډونالډ ټرمپ د فبرورۍ په لومړۍ نېټې پر چیني توکو ۱۰ سلنه او د کاناډا او مکسیکو پر واردېدونکو توکو ۲۵ سلنه تعرفې لوړې کړې او اروپایي ټولنې ته یې د لوړو تعرفو ګوتڅنډنه کړې ده. چین، مکسیکو، کاناډا او اروپایي ټولنې د ډونالډ ټرمپ د لوړو تعرفو په اړه بېلا بېل غبرګونونه ښودلي دي.د کاناډا لومړي وزیر جسټن ټروډو د فبرورۍ په دویمې نېټې یوه مطبوعاتي کنفرانس ته ویلي، چې د امریکې د لوړو تعرفو پر وړاندې به یې د هېواد غبرګون ټولیز یا جامع وي او د ۱۵۵ میلیاردو ډالرو په ارزښت پر امریکایي وارداتي توکو به ۲۵ سلنه تعرفې ولګوي. نوموړي دا هم ویلي، چې د ډونالډ ټرمپ یاده کړنه به په امریکا کې پر بیو مستقیمې اغېزې وکړي او اقتصاد به یې زیان ومومي. مکسیکو ولسمشرې کلوډیا شینباوم بیا د ډونالډ ټرمپ د یادې پرېکړې په ځواب کې د غچ اخیستونکو ګامونو ګوتڅنډنه کړې ده.د امریکې د ګمرکي تعرفو په غبرګون کې د کاناډا او مکسیکو د غچ اخیستونکو تدبیرونو له خپرېدو وروسته، د دریو دواړو هېوادونو مشرانو په جلا جلا ډول ټلیفوني خبرې کړې او ډونالډ ټرمپ سمدستي پر دواړو هېوادونو ګمرکي تعرفې د ۳۰ ورځو لپاره ځنډولې دي، خو پر چیني توکو یې لګولې تعرفې پر خپل ځای پرېښودلې دي.چین د امریکا یاده کړنه د نړیوالې سوداګرۍ له اصولو څخه سرغړونه بللې او په غبرګون کې یې پر ځینو امریکایي توکو ګمرکي تعرفې لګولې دي او هم یې د سوداګرۍ نړیوال سازمان ته شکایت کړی دی.

د چین د دولتي شورا د ګمرکي تعرفو د مقرراتو کمېټې د فبرورۍ په ۴مه نېټه په یوې اعلامیې کې ویلي، چې د همدې میاشتې له ۱۰مې نېټې څخه به د سکرو، مایع طبیعي ګازو، اومو نفتو او زراعتي ماشینونو په شمول د امریکا پر ځینو وارداتي توکو له ۱۰ سلنې څخه تر ۱۵ سلنې پورې اضافي تعرفې ولګوي او په ورته وخت کې د دې هېواد د سوداګرۍ وزارت د ملي حاکمیت، امنیت او پرمختیایي ګټو د ساتلو په موخه د امریکا پي وي ایچ “PVH” ګروپ او ایلومینا شرکت ” Illumina “ د ”بې اعتباره ادارو “ لېست کې شامل کړي دي.د چین د سوداګرۍ وزارت په یوې اعلامیې کې ویلي، چې د امریکې یادو شرکتونو د بازار له عادي سوداګریزو اصولو سرغړونه کړې، له چیني شرکتونو سره یې عادي سوداګریزې معاملې بندې او پر وړاندې یې تبعیضي تدبیرونه نیولي او د چیني شرکتونو مشروع حقونه او ګټې یې سختې زیانمنې کړې دي.

د امریکې د سپینې ماڼۍ ویاند د ګمرکي تعرفو موخه په دې هېواد کې د فنټانیل پر وړاندې مبارزه یاده کړې ده.سپینه ماڼۍ تور لګوي، چې مکسیکو او کاناډا د فنټانیل اومه مواد له چین څخه واردوي او بیا یې په درملو کې کاروي او ورپسې یې امریکې ته صادروي، چې له امله یې امریکایان وژل کېږي.

په امریکا کې له فینټانیل څخه ناوړه او زیاته استفاده کېږي او په وروستیو کلونو کې یې سیاستوالو د دغې مسئلې پړه پر چین وراچولې او تور پرې لګوي، چې د دغه هېواد له فینټانیلونو سره په مکسیکو کې نشه یي مواد ګډېږي او بیا امریکې ته داخلېږي، نو په همدې پلمه یې د چین پر اړوندو ادارو، تصدیو او ملکي وګړیو بندیزونه لګولي دي .چین بیا د امریکې د فدرالي حکومت اداري توان کمزوري بولي او وایي، چې دغه هېواد خپلو خلکو ته د نشه يي توکو د زیانونو په اړه کافي معلومات نه ورکوي، په بېلا بېلو ایالتونو کې یې د درملو د ادارې ۳مخ

# د افغانستان د اماني صندوق ګټه ۴۴۰ میلیونو ډالرو ته رسېدلې

د اماني صندوق د مدیره پلاوي غړي شاه محمد محرابي رسنیو ته ویلي، چې د دغه صندوق له جوړېدو وروسته، د هغه ګټه ۴۴۰ مېلیونو ډالرو ته رسېدلې ده.د ښاغلي محرابي په وینا، دغه صندوق د اسعارو د بیې تثبیت، د بیو د کچو کنټرول او په پایله کې په هېواد کې د مالي ثبات د ساتلو لپاره جوړ شوي دي.د اماني صندوق د مدیره پلاوي غړی وایي: (( اوس، د دغه صندوق شتمني ۳,۹۴ مېلیارده ډالره ده او له جوړېدو راهیسې یې ۴۴۰ مېلیونه ډالره ګټه لرلې ده. دا د مالي مدیریت کړنې ښیې. په پای کې، د افغانستان وجهي صندوق د حکومتولۍ یو منظم چوکاټ جوړ کړی، چې د افغانستان د مالي سیستم د ثبات لپاره ډیزاین شوی دی.))د افغانستان وجهي صندوق د ۲۰۲۲ ز کال په سپټمبر میاشت کې په سویس کې د امریکا د متحدو ایالاتو له خوا د دغه هېواد د ۳,۵ مېلیاردو ډالرو شتمنیو د ساتلو په موخه جوړ شو.د اقتصادي چارو ځینې شنونکي وایي، چې تر اوسه د وجهي صندوق له شتمنیو د هېواد د اقتصادي ودې لپاره کار نه‌دی اخیستل شوی او اړتیا ده په داسې حالت کې، چې افغانۍ د نورو اسعارو پر وړاندې دومره ثبات نه‌لري، د مالي ثبات د ساتلو لپاره ورڅخه ګټه واخیستل شي.د اقتصادي چاروشنونکی عبدالنصیر رښتیا په دې هکله رسنیو ته ویلي: ((اماني صندوق چې جوړ شوي دا په حقیقت کې د افغانستان ملاتړې پیسې دي، چې کولای شي د نړۍ په بازارونو کې د افغانیو باور لوړ کړي او همدارنګه دا افغانستان نړیوالې سوداګرۍ ته د باور د ورکړې لامل کېدای شي))

بله خوا د اقتصاد وزارت یو ځل بیا له امریکا او اروپایي هېوادونو غواړي، چې د افغانستان شتمنۍ له قید او شرط پرته خوشې کړي.د اقتصاد وزارت مسلکي مرستیال عبداللطیف نظري په دې هکله وایي: ۳مخ







# افغان اعلانات





**اطلاعیه دعوت به داوطلبی**

جمعیت هلال احمر افغانی دعوت می نماید تا در پروسه داوطلبی آفر بکرایه گیری ۵ عراده موتر نوع (تیوتا هایلکس ، سوپرکشتم ، دادسن ،و یا فورویل فلدر ) برای مدت ۳ ماه تقویمی در ولایت نورستان ولسوالی های (ولسوالی کامدیش قریه پتیگل وباز گل ،ولسوالی برگ متال قریه چپو ) ولایت ننگرهار (ولسوالی های سپین غر ، ده بالا ، اچین ،خوگیانی ، پچیراکام ، بتی کوت وکوت ) ولایت کنر (ولسوالی های سرکانو ، مروره ، و تپور ،دانگام وپیچ دره ) ولایت کنر ( ولسوالی دانگام ) ولایت کنر ( ولسوالی پیچ دره ) که مشخصات آن درج آفر می باشد به داوطلبی می سپارد. از شرکت های ( تجارتی ، لوژستیکی و ترانسپورتی ) که در قسمت فعالیت داشته باشند ، درخواست های خویش را به آمریت تهیه ، تدارکات و قرار داد های جمعیت هلال افغانی واقع افشار سیلو بسپارند ، خود شان بعد از نشر اعلان الی مدت ۷ روز به مجلس داوطلبی مراجعه نموده و پول حق الاشتراک مبلغ ۱۰۰۰ افغانی نقدا اخذ میگردد.۹۱۵۱

**اطلاعیه فروش موتر**

اسامی محترم شرکت ندیم زمان لمتید یک عراده موتر پلیت ۵۴۳۹۳-۳ ش کابل نوع تیوتا کرولا غرفه دار جاپانی خویش را بعد از طی مراحل قانونی خرید و فروش بالای فیصل فرزند نجیب الله بفروش رسانیده است.بناء اشخاص ادارات و موسساتی که با عراده فوق کدام معامله داشته باشند الی مدت سه یوم به مدیریت ترافیک کابل اطلاع دهند. ۹۱۵۳

**اطلاعیه فروش موتر**

اسامی محترم شرکت ندیم زمان لمتید یک عراده موتر پلیت ۵۴۳۹۳-۳ ش کابل نوع تیوتا کرولا غرفه دار جاپانی خویش را بعد از طی مراحل قانونی خرید و فروش بالای فیصل فرزند نجیب الله بفروش رسانیده است.بناء اشخاص ادارات و موسساتی که با عراده فوق کدام معامله داشته باشند الی مدت سه یوم به مدیریت ترافیک کابل اطلاع دهند. ۹۱۵۳

**اطلاعیه مفقودی**

یک قطعه ترجمه انگلیسی نکاح خط شرعی ۶۳۱۸۷ به اسم محمد شریف فرزند محمد کبیر و محترمه لیلما بنت عبدالستار مفقود گردیده از اعتبار ساقط میباشد.۹۱۶۱

**اطلاعیه مفقودی**

یک قطعه جواز وکالت دفاع شماره ۳۱۵۵ مورخ ۲۵/ ۱۴۴۵/۳ مربوط محترم محمد طاهر لیوال فرزند کریم داد که شماره متذکره نیز درج آن میباشد مفقود گردیده از اعتبار ساقط میباشند.۹۱۴۵

**اعلان مفقودی**

یک قطعه مکتوب گمرکی موترسایکل دارای نمبر ۲۱۳۵ به اسم منور لمیتد مفقود گردیده از اعتبار ساقط است.۹۱۶۹

**اعلان مفقودی**

یک جلد پاسپورت تجارتی به اسم سید رضا ولد سید طاهر مفقود گردیده از اعتبار ساقط است۹۱۵۴

**اعلان مفقودی**

یک قطعه کارت هویت اتباع خارجی کشور ایران به اسم علی اکبر ملکی دارای نمبر پاسپورت D67160587 مفقود گردیده از اعتبار ساقط است .۹۱۵۸.

**اطلاعیه به کرایه دهی**

شرکت دولتی فارمسی ابن سینا تعمیر دواخانه عمده فروشی خویش را واقع هوتل پروان عقب صحت مارکیت ناحیه یازدهم شهر کابل موقعیت دارد. در روشنی قوانین نافذه کشور طور مزایده به کرایه میدهد.چون قبلا مجلس آفرگشایی مبلغ ۳۱۹۹۹ افغانی ماهوار شرکت فابریکه تولید پایه های برق و پلچک سازی پسران غلام نبی نور دارنده جواز نمبر (D-82152) می باشد ارایه نموده است.اشخاص و افراد حکمی و حقیقی که خواهش ارایه نرخ بلند تر از قیمت متذکره را داشته باشند ، شرطنامه متذکره را از مدیریت ملکیت های مدیریت عمومی خدمات شرکت امارتی فارمسی ابن سینا در بدل ۱۰۰۰ افغانی پول غیر قابل بازگشت دریافت نموده جلسه آفرگشایی ۷ یوم بعد از نشر اخبار بروز معیینه ساعت ۱۰:۰۰ بجه قبل از ظهر در مقر شرکت امارتی فارمسی ابن سینا برگزار میگردد. تضمین طبق مقررات اخذ میگردد.۹۰۸۱

**اطلاعیه کندز**

موازی هفت جریب بسوه و نوزده بسواسه ملکیت ریاست شاروالی کندز واقع ناحیه پنجم شهر کندز برای مدت یک سال به اجاره داده می شود. اشخاص و افراد واجد شرایط که خواهش اشتراک در مجلس داوطلبی آن را داشته باشند با درخواست های شان اعتبار از نشر اعلان الی مدت ۲۱ روز کاری به ریاست شاروالی کندز مراجعه نمایند.

شرطنامه را ملاحظه نموده تامینات نقدا اخذ میگردد.۸۸۸

**اطلاعیه کندز**

هوتل کندز ملکیت ریاست شاروالی کندز واقع ناحیه اول شهر کندز برای مدت یک سال به اجاره داده میشود .اشخاص و افراد واجد شرایط که خواهش اشتراک در مجلس داوطلبی آن را داشته باشند با درخواست های شان اعتبار از تاریخ نشر اعلان الی مدت ۲۱ روزکاری به ریاست شاروالی کندز مراجعه نمایند .شرطنامه را ملاحظه نموده تامینات نقدا اخذ میگردد.۸۸۹

---

**ټرمپ پر نړیوالي...**

ټرمپ پر داسې مهال اسرائیلو ته له جنګي جنایتونو برائت ورکوي، چې اسرائیلو غزه کې داسې بشري جنایتونه وکړل، چې تاریخ کې به د ټول عمر لپاره د یو تور داغ په څېر پاتې شي.

**د اوپک غړي دي...**

منشي هیثم الغیث سره په یوه غونډه کې یادې څرګندونې یوه ورځ وروسته له هغه کړې ،چې ټرمپ د یوه اجرائیوي فرمان په لاسلیکولو سره پر ایران د ډېرو بندیزونو غوښتنه کړې.ټرمپ وایي: هدف یې دا دی چې تهران اټومي وسلو ته لاسرسي پیدا نه کړي.د ایران د دولتي رسنیو په وینا، پزشکیان له الغیث سره په غونډه کې ویلي: (( زه باور لرم که د اوپک غړي متحد وي او یوځای کار وکړي، نو امریکا به ونشي کولی ،چې په دوی باندې بندیزونه ولګوي او فشار راوړي.)) ایران دامهال په ورځ کې شاوخوا ۱.۵ میلیونه بېرله خام تېل صادروي ،چې ډېر یې، چین ته صادرېږي.د ایران د تېلو پر صادراتو د امریکا له لوري د بندیزونو په لګېدو سره به دغه چاره په نړیوالو بازارونو کې د تېلو پر بیو خورا اغېزه وکړي.

**بنګله دېش کې اعتراض...**

بیا دا کور پر موزیم بدل کړ.لاریون کوونکي ورم ېبګا ناوخته د یاد کور د ویجاړولو لپاره له لرګیو، څټکونو او نورو وسایلو سره راوتلي وو ،چې ځینو نورو بیا د کور ویجاړولو لپاره له ځان سره کرېن هم راوستلي و.لاریون کوونکو د حسینې په مشري د عوامي ګوند د غړیو او ملاتړکوونکو کورونه، سوداګریز مرکزونه او ودانۍ هم په نښه کړي دي.

**دین مبین اسلام ...**

و آن طوری باشد که بدون ظلم،ستم و بدون استبداد که در آن وحدت ملی و وفاق همگانی رعایت گردد،عدالت ،مساوات،آزادی اسلامی و برادری دینی وجود داشته باشد.اسلام پیروانش را دستور می دهد تا کارهای شانرا از طریق مشاوره و ایجاد شورا به صورت مشوره به پیش ببرند تا نتایج حاصله از آن به خیر همگان تمام گردد. و این دستور در حقیقت سبب تحکیم وحدت ملی و وفاق جمعی میان جهان بشریت می گردد، در صورتی که همه بشریت با پادر میانی همدیگر شان مسایل مربوط به خود را به مشوره بنشینند،نه تنها که نتایج مشوره های جمعی به خیر شان انجام می شود، بلکه اخوت ،وحدت و وفاق را در میان شان استحکام می بخشد.وظیفه جهان بشریت است تا برای حال و آینده با سعادت اخوت،برادری، انسانیت،وحدت ملی و همدردی را در جامعه قایم نموده و مردم را به سلامتی، امن و امان در سایه تحکیم وحدت ملی که متضمن زندگی باهمی بشریت باشد رهنمایی نماید.یگانه راه حل منازعات ،رفع موانع و مشکلات زندگی در فضای صلح و وحدت ملی و بالاخره نیل به سعادت دنیا و آخرت، همانا پیروی از تعالیم والای اسلام اخلاق قرآن پیامبر و پیام آور صلح و وحدت و منجی بشریت می باشد.صلح و آسایش ،پیشرفت، تمدن ،برادری و برابری تحکیم وحدت ملی و وفاق ملی حفظ حقوق و کرامت انسانی، تحکیم عدالت اجتماعی ،حقوق اساسی، همه و همه ، همین گونه استفاده درست از نعمت ها و ثروت های روی زمین تنها در سایه دین و روشنایی تعالیم اسلام و پیروی از احکام و قوانین آن میسر است. تحکیم وحدت ملی و وفاق ملی نه تنها که در سرلوحه دساتیر دین مبین اسلام قرار دارد،بلکه وحدت ملی را یگانه وسیله رسیدن بشریت به سعادت دنیا و آخرت و زندگی باهمی در روی زمین می داند. روی همین دلایل است که اسلام همیشه به پیروان خود هدایت می دهد که با همدیگر زندگی مسالمت آمیز داشته باشند و در سایه تحکیم وحدت ملی و باهمی روز گار را سپری نمایند.

با پیروزی مجاهدین امارت اسلامی صلح ،امنیت، ثبات ، تحکیم وحدت ملی و وفاق ملی درسراسر کشور بوجود آمده و افغانستان از همه بدبختی ها نجات یافته ان شاءالله به شاهراه سعادت و تعالی گام برمیدارد و آینده درخشانی را به ارمغان خواهد آورد.

**د افغانستان د اماني ...**

(( ژر تر ژره باید دغه شتمنۍ د مرکزي بانک په واک کې ورکړل شي، چې د پیسو د ملاتړ په توګه په سترو اقتصادي سیاستونو او د افغانستان د خلکو د بنسټیزو اړتیاوو په برخه کې ولګول شي.))دا په داسې حال کې ده چې د ۲۰۲۱ زکال په اګست میاشت کې د کابل اداري له نسکورېدو وروسته د افغانستان له نهو مېلیاردو ډالرو زیاته شتمني د امریکا او اروپایي بانکونو له خوا کنګل شوې ده.

**د امریکا له خوا...**

معیارونه مختلف دي او په څه دپاسه نیمو ایالتونو کې یې د چرسو د قانوني کېدو تګلاره غوره شوې او همدا د فینټانیل او نورو ورته موادو د ناوړه استفادې لاملونه یادوي. چین وایي، د امریکې سیاسي ګوندونه په خپلمنځي ننداړو بوخت وي او په کوردننه د ستونزو او مسئلو مخه نه نیسي، خو د ټاکنیزو کمپاینونو پرمهال د خلکو د پام اړولو په موخه پر چین او نورو هېوادونو نیوکې کوي او د خپل بام واورې پر نورو وراچوي.بېجینګ ادعا کوي، چې امریکا پر مختلفو لارو د چین پر وړاندې خنډونه جوړوي او د پرمختګ مخه یې نیسي.ډونالډ ټرمپ د تعرفو په لمن کې یوازې چین، کاناډا او مکسیکو ته ځای نه دی ورکړی، بلکې خپله نږدې متحده اروپایي ټولنه یې هم پکې رانغاړلې ده.نوموړې په ټینګار ویلي، د اروپایي ټولنې پر محصولاتو به هم ګمرکي تعرفې لوړې کړي او په خبره یې، دغه ټولنه له امریکې ډېره ګټه کوي، خو امریکایي محصولات بیا نه اخلي.د فرانسې ولسمشر ایمانوېل مکرون د اروپایي ټولنې په اړه د ډونالډ ټرمپ وروستیو څرګندونو ته ګوتڅنډنه کړې او ویلي یې دي، که امریکا د اروپایي ټولنې ګټې تر برید لاندې راولي، نو دغه ټولنه به د خپلو مشروعو ګټو لپاره غبرګون وښيي. د اروپایي ټولنې د بهرنیو چارو او د امنیتي پالیسیو لوړپوړې استازې کاجا کالاس د فبرورۍ په ۳مې نېټې رسنیو ته ویلي، چې د سوداګرۍ جګړه ګټونکې نه لري او په وینا یې اروپایي ټولنه او امریکا یو بل ته اړتیا لري.د هسپانیې د بهرنیو چارو وزیر الوارز بوینو ویلي، د امریکا له خوا پیل شوې سوداګریزه جګړه ښایي پر اروپایي ټولنې اغېزه وکړي، خو په خبره یې، اروپایي ټولنه هم کلک هوډ او وسیلې لري او د ګمرکي تعرفو له اغېزو به ځان وژغوري.

د ډنمارک صدراعظمې میټ فریډریکسن بیا نسبتاً په توندو ژبه ویلي، که د امریکا ولسمشر ډونالډ ټرمپ پر اروپایي ټولنې زیاتې تعرفې ولګوي، نو دغه ټولنه یې باید پر وړاندې (په ګډه او زغرده) ورته ګامونه پورته کړي.

**هېڅ راز سیسټمونه ...**

د مخابراتو او معلوماتي ټکنالوژۍ وزارت هېوادوالو او امارتي وزارتونو او ادارو ته ډاډ ورکړی، هغه سیسټمونه چې د دوی اړوند دي؛په محفوظ ډول د تخنیکي او مسلکي کادرونو له لوري ساتل کېږي او د نورو له لاسوهنې څخه په امن دي.په اعلامیه کې یادونه شوې چې د معلوماتو د ملي مرکز «ډېټاسنټر» او اړوند آرشیف سیسټمونه په بشپړ ډول خوندي دي او تر دې دمه د سایبري حملو پر وړاندې په ډاډمن ماحول کې ساتل کېږي.

د مخابراتو او معلوماتي ټکنالوژۍ وزارت د ابتدایي معلوماتو له مخې؛ ښایي یاد معلومات په متفرقه ډول له انفرادي کمپیوټرو څخه چې له امنیتي تدابیرو برخمن نه دي؛ د لاسرسي وړ ګرځېدلي وي.

**نیمروز کې ۱۰۰ بستریز...**

د دغه روغتون د پرانیستلو پرمهال ویلي، چې یاد روغتون د عالیقدر امیرالمؤمنین (حفظهالله ) د ځانګړې هدایت له مخې، د شیخ عبدالله بن محمد په مالي لګښت، د اطلاعاتو او فرهنګ وزارت د خیریه برخې له خوا د دوه میلیونه ډالرو په لګښت جوړ شوی دی.ښاغلي خیرخواه زیاته کړې، چې دا روغتون د نیمروز د ولس لپاره حیاتي ارزښت لري او اسلامي امارت به د دې ولایت د نورو اړتیاوو پوره کولو ته هم پاملرنه وکړي.

په یادو مراسمو کې د عامې روغتیا وزیر، مولوي نور جلال جلالي وویل: د عالیقدر امیرالمؤمنین (حفظهالله ) په شفقت سره، د هېواد په ولسوالیو کې له ۳۰۰څخه د زیاتو معیاري روغتونونو د جوړولو هدایت شوی، چې ډېر ژر به یې چارې پیل شي.

ده زیاته کړې: د عامې روغتیا وزارت ژمن دی چې ولایتي روغتونونه په معیاري ډول سمبال او خلکو ته معیاري روغتیایي خدمتونه وړاندې کړي.

همداراز د هلمند والي، الحاج مولوي عبدالرحمن مسلم کندزي وویل:عالیقدر امیرالمؤمنین حفظهالله د هېواد له ولسونو سره پوره شفقت او خواخوږي لري، چې د هېواد په کچه د نورو پروژو ترڅنګ د نیمروز ولایت د ولایتي روغتون پرانیستل او پاملرنه یې ښه بېلګه ده.

د نیمروز والي، شیخ محمد قاسم "خالد" بیا وویل، د نیمروز په کچه د روان کال په ۱۱ میاشتو کې د شاوخوا ۴ میلیاردو افغانیو په لګښت پروژې جوړې شوي او یا هم چارې یې رواني دي.

د نیمروز والي زیاته کړه، چې په تېر نظام کې د ولایتي روغتون چارې ۳۰ سلنه ترسره شوې وې؛ خو د ۸۰ سلنه پیسې یې را ایستل شوې وې او موږ هڅه وکړه ترڅو د شیخ عبدالله الثاني په مالي مرستې پاتې چارې یې د ۲ میلیونو ډالرو په لګښت بشپړې کړو. ښاغلي خالد د عامې روغتیا له وزیر، څخه وغوښتل ترڅو په دلارام ولسوالۍ کې هم یو روغتون جوړ کړي، چې د یادې ولسوالۍ د ولسونو ستونزې حل کړای شي. همدا راز یې د همدې روغتون د امکاناتو او تجهیزاتو په برابرولو او د همدغه روغتون له ۱۰۰ بستریز څخه ۲۰۰ بستریز ته د ارتقاء غوښتنه هم وکړه.

د نیمروز ولایت د علماوو د ولایتي شورا رئیس، شیخ مولانا عبدالرحمن معتصمي د خبرو پرمهال نیمروزي ولس ته د مبارکۍ ترڅنګ د اسلامي شریعت له نظره د مسئولینو د مسئولیت په تړاو خبرې وکړې او د یاد روغتون د جوړولو په اړه یې هر اړخیزې خبرې وکړې.

د نیمروز وګړي وايي چې دوی له کلونو کلونو انتظار وروسته د همدې اړینې پروژې د پرانیستو په تمه وو او اسلامي امارت د هېواد د بیارغونې په برخه کې پوره ژمنتیا لري.

**د مولانا جلال الدین د پلار ...**

د یادونې وړ ده چې د مولانا جلالالدین محمد بلخي د پلار د خانقاه د بیارغونې چارې به د اطلاعاتو او فرهنګ وزارت په همغږۍ او د ټیکا موسسې په مالي ملاتړ په نږدې راتلونکي کې پیل شي.

**خوست کې د اوبو ...**

۱۷۹ افغانیو په لګښت د اوبو رسولو د درېیو شبکو په جوړېدو سره د سیمې ۵۲۶ کورنیو ته د څښاک اوبه برابرې شوې دي.سرچینې زیاته کړې، چې یادې شبکې د ۵ میاشتو په موده کې جوړې شوې دي او پرمټ یې د سیمې لسګونو کسانو ته د کار زمینه هم برابره شوې وه.

**غزني کې جهادي...**

آثارو د ساتلو لپاره غوره او مناسب چاپېریال برابر شوی دی.دغه راز د غزني مرستیال والي په خپلو خبرو کې، د دې ولایت د اطلاعاتو او فرهنګ ریاست کړنې وستایلې او غزني یې د هېواد یو له هغو تاریخي ولایتونو څخه یاد کړ چې د سیلانیانو راتګ ورته ډېر شوی دی. ده د سیلانیانو لپاره د لازمو آسانتیاوو پر برابرولو ټینګار وکړ او ډاډ یې ورکړ چې د ولایت مقام په دې برخه کې د غزني د اطلاعاتو او فرهنګ ریاست سره هر ډول همکارۍ ته چمتو دی.

**د کار او ټولنیزو چارو ...**

د چارو شنونکي د ټولنیزو چوپړتیاوو په برخه کې د ناروې خدمتونه ګټور بولي او پر دوام یې ټینګار کوي. مولوي عبدالمنان عمري د ناروې د کډوالو اداري له رئیس څخه غوښتنه کړې، چې خپل اداري لګښتونه راټیټ او د خدماتي لګښتونو کچه زیاته کړي او خپل ټول فعالیتونه په مرکز او ولایاتو کې د کار او ټولنیزو چارو وزارت او ولایتي ریاستونو سره په همغږۍ کې ترسره کړي.

**د لوګر ۴ ولسوالیو ته...**

(( د برهکیبرک ولسوالۍ اړوند ۵۰ ترانسفرمرونه منظور شوي، د محمداغې ولسوالي په زرغون ښار، مغلخېل، دهنو سیمو کې سروې روانه ده او هڅه پیل شوې ،چې د خرخ او خوښۍ ولسوالۍ ګڼو سیمو ته هم راتلونکې یوه کال کې برښنا وصل شي.))منصور همدارنګه وایي: د پخوا په پرتله دغلته د برښنا ریاست کارونو پراختیا پیدا کړې او سږ کال یې د مرکز پلعلم له ښاریانو د برښنا له درکه ۱۸۰ میلیونه افغانۍ عواید راټول کړي دي.د لوګر اوسېدونکي هم خوښ دي چې د دغه ولایت د مرکز پلعلم لرې پرتو سیمو او ولسوالیو ته د ازبیکستان وارداتي برښنا غځول کېږي، خو ټینګار کوي چې دغه ژمنه دې په عمل کې ثابته کړي.د یادونې وړ ده چې د ازبیکستان وارداتي برښنا یوازې د لوګر د مرکز پلعلم ښار زر ګونو کورنیو ته ورکړ شوې ده او د ولسوالیو او لرې پرتو سیمو اوسېدونکي د وارداتي برښنا ترڅنګ، لمریزې او جنراتوري برښنا ته هم لاسرسي نهلري.

**ترکیه کې د افغانستان ...**

کېدو اوازې رد کړې، چې له دې وړاندې انقره کې د افغانستان سفارت د تړل کېدو ناسم خبرونه ورکړل شول. هغه څه چې د بهرنیو چارو وزارت رد کړل او ناسم یې وبلل.

**غزني کې د لسګونو...**

د راټولولو او درملنې لړۍ به په دې ولایت کې دوام ولري.

**د ستري محکمې ...**

د قربانیانو له کورنۍ سره یې لیدنه کړې، دوی ته یې پر تسلیت سربېره ډاډ ورکړي چې د اسلامي امارت محاکم به د دې پېښې عاملین د شریعت مطابق مجازات کړي.دغه راز د جزا دېوان رئیس امنیتي مسئولینو ته سپارښتنه کړې، چې د یادې پېښې جدي پلټنه وکړي، ټول عاملین یې پیدا او دوسیې یې د شرعي پرېکړو په موخه اړوندې محکمې ته راجع کړي.د یادونې وړ ده، چې د سترې محکمې د جزا دېوان عمومي رئیس مفتي عتیق الله درویش له دې مخکې هم د جزایي دوسیو په اړه د وروستیو تحقیقاتو د بشپړولو په موخه ځینو ولایتونو ته سفرونه کړي.

**پنجشېر کې د لسګونو سرو...**

ریاست هڅه کوي چې په راتلونکي کې د پنجشېر په بېلابېلو سیمو کې نورې سړې خونې جوړې کړي.باید وویل شي، چې د دغو سړو خونو بیارغونه د کرنیزو محصولاتو د ضایعاتو د کموالي په برخه کې ستر رول لري او د کروندګرو لپاره د عوایدو د زیاتوالي زمینه برابروي.

# Hewad Daily

د ورځپاڼو رئیس : انجنیر عُزیر« بریالی»
موبایل : ۰۲۰۲۵۲۶۳۴۰
آمر او مسئول مدیر : عطاء الله مبارز
موبایل: ۰۷۷۴۳۱۸۹۰۲
مسئول سکرتر: شېرمحمدنظري
موبایل: ۰۷۸۸۵۰۳۳۷۱

پته: اتمه ناحیه، د المپیک څلورلارې، د حضوري چمن ختیځ
کابل - افغانستان
دارېکو شمېره: س۰۲۵۲۶۳۴۰ - ۰۲۰
E-mail :info@hewaddaily.com
E-mail : hewad1948@gmail.com
دهیوادورځپاڼې انټرنېټي پاڼې دلاندې وېب سایټ له لارې هم کتلی شئ
وېب سایټ: www.hewaddaily.com
دشکایاتو اوتوزیع څانګه:
۰۲۰۲۳۱۲۵۰۹-۰۷۶۶۰۴۴۹۶۶-۰۷۳۶۰۶۰۷۳

شنبه دشعبان المعظم۹مه ۱٤٤٦ق کال د ۱٤۰۳ ل کال د سلواغې ۲۰مه د 2025 م کال د فبروري۸مه


# ننګرهار کې د (( وچ خوړ بند )) د جوړولو چارې پیل شوې

د ننګرهـــار محلي مســـئولین وايي، چــې د دې ولایت په حصارک ولسوالۍ کې د «وچ خوړ بند» د جوړولو چارې پیل شــوې. د ننګرهار ولایت مرســتیال مولوي عزیزالله مصطفـــي وايي: دا بنـــد د (یو.ان.ډي.پـــي) ادارې په مالي لګښـــت جوړېږي چـــې ۳۵ میلیونه افغاني لګښـــت پرې راځـــي ،چې چارې به یې د یوه کال په موده کې بشـــپړې شي.د نوموړي په وینا، یاد بنـــد ۶۸ متره اوږدوالي، ۹ متره پراخـــوالي او ۱۰ مـــتره لوړوالي لري ،چـــې د ۷۸,۳۳۲ متره مکعبو اوبو ذخیره کولو ظرفیت لري.دغه بند دوه دروازې لري، چې د موسمي ســـېلابونو پرمهال د رسوباتو تصفیې سره مرسته کوي.د یاد بند د جوړولو چارې د یو خصوصي شرکت له لوري پرمخ وړل کېږي، ورته سپارښـــتنه وشوه ،چې یاد بند په معیـــاري ډول جوړ او په خپل وخت ګټې اخیستنې ته وسپاري.یاده دې وي ،چې د یاد بند په جوړولو سره به د حصارک ولسوالي سلګونو کسانو ته د کار زمینه هم برابره شي.

## ترکیه کې د افغانستان سفارت د تېرل کېدو راپورونه ناسم دي

د افغانســـتان د بهرنیـــو چارو وزارت ترکیه کې د افغانســـتان ســـفارت د تـــړل کېدو پـــه اړه خپاره شوي راپوروونه ناسم بللي او ویلي یې دي: هلته د سفارت چارې د تېر په شـــان دوام لري.

د بهرنیـــو چـــارو وزارت دویم سیاسي رئیس ذاکر جلالي ویلي، د ترکیـــې پلازمېنـــه انقره کې د افغانســـتان سفارت چارې د تېر په شـــان پـــه نورمـــال او عادي ډول دوام لري.ذاکر جلالي ډاډ ورکـــړی، چې یاد ســـفارت لا هم په بشـــپړې روڼتیا او ژمنتیا سره کونســـلي خدمات وړاندې کوي په خـــبره یې، د هېوادونو ډیپلوماتیکو اســـتازولیو کې د ډیپلوماټانـــو ادلـــون بدلون یوه عادي کړنه ده.نوموړي داســـي مهـــال ترکیه کې د افغانســـتان سفارت د تړل **۳مخ**

## د خوســـت له مرکزي زندان څخه ۱۸۳ بندیان آزاد شول

د عالیقـــدر امیرالمؤمنـــین (حفظه الله ) د ځانګړي فرمان پر اساس د خوست له مرکزي زندان څخه ۱۸۳ بندیـــان ازاد او د ۲۸۷ نورو بندیانـــو د بنـــد موده کمه شـــوه. پـــه جوړو شـــویو مراســـمو کې د خوســـت د مرافعـــه محکمـــې مرســـتیال مفتي محمد مدني ازادو شویو بندیانو ته وویل:
«مشـــفقو مشرانو پرتاسو شفقت وکړ؛ تاسو هم باید له دې فرصته ســـالمه ګټه واخلئ او خپل ژوند سم کړئ».
د سرچینې په وینا، په ازادو شویو بندیانو کې ۳ ښځې او ۸ ماشومان هم شامل دي.
په ورته وخت کې ازادو شـــویو زندانیانو د دې فرمان هرکلي وکړ او ویې ویل چې دغه اقدام د دوی د اصلاح او نوي ژوند لپاره یو ښه فرصـــت دي ترڅو خپلې تېروتنې جبران او سالم ژوند غوره کړي.
د یادونـــې وړ ده چې د خوســـت مرکزي زندان کې اوس مهال ۸۱۰ بندیان شـــتون لري چې په کې ۸۰ تنـــه به یې درې ورځې وروســـته ازاد شي.

## د سترې محکمې د جزا دیوان عمومي رئیس د ۲۲ جزايي دوسیو په اړه وروستۍ څېړنې بشپړې کړې

د ســـترې محکمې د جزا دېوان عمومي رئیس مفتـــي عتیق الله دروېـــش د ســـترې محکمـــې د رئیـــس او قاضي القضات شـــیخ عبدالحکیـــم حقاني په ځانګړې لارښـــوونه لا وړمـــه ورځ د یو شمېر مهمو جزايي دوسیو په اړه د وروستیو څېړنو د بشپړولو په موخه د هېواد څلورو ولایتونو (پکتیـــا، پکتیکا، خوســـت او لوګر) ته ســـفر کـــړی.د جزاء دېـــوان عمومي رئیس چې مفتي عبدالحي شـــاکر او مفتي فضل الرحمن قاســـمي یې ملتیا کوله، یـــادو ولایتونـــو ته د ســـفر پر مهال د ۲۲ جزايي دوسیو په اړه وروســـتۍ څېړنې بشپړې کړې. مفتـــي عتیق اللـــه دروېش د یاد ســـفر پر مهال د یادو ولایتونو د مرافعه محاکمو له رئیسانو او د نورو اړوندو محاکمو له قضايي غـــړو سره لیدنه وکړه، د جزايي موضوعاتـــو د حـــل او فصل په موخـــه یې لـــه تفصیـــلي خبرو وروسته ورته لازمي لارښووني وکړې.دغه راز د سترې محکمې د جزا دېـــوان عمومي رئیس او ورسره مل پلاوي په یاد سفر کې د جزايي دوسیو له جانبینو سره هـــم لیدنې کړې او له هغوی یې د دوســـیو په اړه وروستي بشپړ تحقیقات کړي.د سترې محکمې دغه قضايي پلاوي پر یادو لیدنو عـــلاوه د خوســـت ولایت علي شېرو ولســـوالۍ ته سفر کړي، په یاده ولسوالۍ کې یې د تېرې امنیتي پېښې ځای له نږدې لیدلي او **۳مخ**

## غزني کې د لسګونو روږدو کسانو درملنه وشوه

د غزني ولایـــت د امنیې قوماندانۍ مســـئولین وايي چې پـــه دې ولایت کـــې د ۴۵ روږدو کســـانو درملنـــه شوې ده.د غزني د امنیې قوماندانۍ ویاند خالد سرحدي باختر اطلاعاتي اژانـــس تـــه ویلي چې یاد کســـان د غزني له بېلابېلو ســـیمو څخه راټول کړای شـــوي وو او د (بهار) په نامه ۵۰۰ کسیز کمپ کې له ۶ میاشتینۍ درملنې وروســـته خپلـــو کورنیو ته سپارل شوي دي.د سرحدي په وینا، د نشـــه یي توکو پر وړاندې مبارزه دوام لري او پرون هـــم له بېلابېلو ســـیمو څخه ۱۸ نور روږدي کسان د درملنې پـــه موخه راټول شـــوي دي.سرچینـــې زیاتـــه کـــړه چې د روږدو کسانو **۳مخ**

## د ننګرهار ۶۰ روغتیايي مرکزونو ته طبي وسایل وسپارل شول

د ننګرهـــار ولایـــت د عامې روغتیـــا ریاســـت مســـئولین وايي چـــې د دغه ولایت ۶۰ روغتیایـــي مرکزونـــو ته ۴۸ قلمه طبي او غیر طبي وسایل سپارل شـــوي دي.د ننګرهار د عامې روغتیا رئیس مولوي امـــین اللـــه شریـــف باخـــتر اطلاعاتي آژانس ته ویلي، چې په دې وســـایلو کې د بســـتر چپرکټونـــه، ولادي میزونه، المـــارۍ، چوکۍ او نور اړین توکـــي شـــامل دي.نوموړي زیاتـــه کړه، چې یاد وســـایل د جک موســـسې لـــه لوري دغه ریاســـت ته سپارل شوي وو. مولـــوي امین الله شریف زیاتـــه کـــړه چې پـــه نږدې راتلونکـــو میاشـــتو کې به د دغـــه ولایت یو شـــمېر نورو روغتیایـــي مرکزونـــو ته هم ورته وسایل ورکړل شي

## پنجشېر کې د لسګونو سړو خونو د بیا رغولو چارې بشپړې شوې

د پنجشـــیر د کرنـــې، اوبو لګولو او مالـــدارۍ ریاســـت مســـئولین وایـــي، چې ســـږ کال یـــې په دې ولایت کې د کرنیزو محصولاتو د ساتنې لپاره ګڼ شـــمېر معیاري ســـړې خونې بیـــا رغولـــي دي.د پنجشـــېر د کرنې، اوبولګولو او مالـــدارۍ رئیس قـــاري فضل الله دیوبنـــد باختراطلاعـــاتي آژانـــس ته ویـــلي، چې دغه ســـړې خونې د کرنیـــزو محصولاتـــو د ضایـــع کېـــدو د مخنیوي او د کروندګرو د عایداتو د زیاتـــوالي لپاره مهمې دي، چـــې د یاد ولایـــت په مرکز بـــازارک او ۷ ولســـوالیو کې بیا رغول شـــوي او ګټې اخیستنې ته سپارل شوې دي.د نوموړي په وینا تردې مهالـــه په یاد ولایت کې ۵۷ معیاري سړې خونې فعالې دي چې په کې د کروندګرو پیاز، کچالو، منې او نـــور کرنیز محصولات په کې ســـاتل کېږي.دیوبند ټینګار وکـــړ چې د دغه ولایت د کرنیزو محصولاتـــو د تولید پـــه پرتله د دغو سړو خونو شمېر کافي نه دی او د کرنې **۳مخ**

## بهرني لنډ خبرونه

### ټرمپ پر نړیوالې محکمې بندیزونه لګولي

د امریـــکا ولســـمشر ډونالـــډ ټرمـــپ د یـــوه اجرائیـــوي فرمـــان لـــه مخې د جرمونـــو پـــر نړیوالـــي محکمـــې د امریـــکا او اسرائیلـــو پـــر ضـــد د اقداماتـــو لـــه کبلـــه اقتصـــادي بندیزونـــه لګـــولي دي. ټرمـــپ پـــه خپـــل فرمـــان کـــې پـــر نړیـــوالي محکمـــې پـــر اقتصـــادي بندیزونـــو سربېـــره د یـــادې محکمـــې د چارواکـــو او د هغـــوی د کورنیـــو د غـــړو شـــتمني هـــم کنـــګل کـــړې او پـــر ســـفرونو یـــې بندیـــز لګـــولي دي.د امریـــکا ولســـمشر ټرمـــپ وروســـته لـــه هغـــې د جرمونـــو پـــر نړیوالـــي محکمـــې بندیـــز لګـــولي، چـــې یـــادې محکمـــې د تېـــر کال پـــه نومـــبر میاشـــت کـــې غـــزه کـــې د بـــشري جنایـــت تـــرسره کولـــو لـــه کبلـــه د اسرائیلـــو د لومـــړي وزیـــر نتنیاهـــو او د پخـــواني دفـــاع وزیـــر یـــواف ګالانـــټ د نیولـــو حکـــم صـــادر کـــړ، خـــو د ټرمـــپ دغـــه کړنـــه د بخښـــنې د نړیـــوال ســـازمان سرمنـــشي غندلـــې او ویـــلي یـــې دي، دا فرمـــان داســـې ښـــيي چـــې اسرائیـــل لـــه قانونـــه هـــم پورتـــه دي. د بخښـــنې نړیـــوال ســـازمان پـــه دې اړه اندېښـــنه ښـــودلې او دایـــې د نړیـــوال عدالـــت د کمـــزورې کولـــو پـــه معنـــا بللـــې. **۳مـخ**

د ایران ولسمشر:

### د اوپک غړي دې د امریکا د احتمالي بندیزونو پر وړاندې ودرېږي

د ایـــران ولســـمشر مســـعود پزشـــکیان د اوپـــک غـــړو هېوادونـــو څخـــه غوښـــتنه کـــړې ،چـــې د تېلـــو تولیدوونکـــو هېوادونـــو بانـــدې د امریـــکا د احتـــمالي بندیزونـــو پـــر وړانـــدې ودرېږي.نومـــوړي دغـــه غوښـــتنه د امریـــکا د ولســـمشر ډونالـــډ ټرمـــپ د هغـــو څرګندونـــو پـــه غبرګـــون کـــې کـــړې ،چـــې ویـــلي یـــې دي، د تهـــران د تېلـــو صـــادرات بـــه صفـــر تـــه راښـــکته کړي.پزشـــکیان د اوپـــک لـــه عمومـــي **۳مـخ**

### بنګله‌دېش کې اعترض کوونکو د شیخ‌حسینې کور سوځولی

پـــه بنګله‌دېـــش کـــې زرګونـــو اعـــتراض کوونکـــو د یـــاد هېـــواد د مخکینـــۍ لومـــړۍ وزیـــرې شـــیخ حســـینې کـــور تـــه اور اچولـــی او ویجـــاړ کـــړی یـــې دی.اعتراض‌کوونکـــو وروســـته لـــه هغـــې د مخکینـــۍ لومـــړۍ وزیـــرې کـــور تـــه اور واچـــاوه ،چـــې نومـــوړې پـــر ټولنیـــزو رســـنیو یـــوې ویډیـــو کـــې لـــه خپلـــو پلویانـــو غوښـــتنه وکـــړه ،چـــې د لنډمهـــالي حکومـــت پـــر وړانـــدې ودرېږي.شـــیخ حســـینې د تېـــرکال اګســـت کـــې د لاریونونـــو پـــه پایلـــه کـــې لـــه ۱۵کلونـــو واکمنـــۍ وروســـته واک پرېښـــود او هند ته وتښـــتېده. بنګله‌دېـــش پـــه پلازمېنـــه ډاکـــه کـــې دا کـــور د حســـینې د پـــلار شـــیخ مجیب‌الرحمـــن کـــور و ،چـــې پـــه ۱۹۷۱ ز کال کـــې یـــې لـــه پاکســـتان څخـــه د خپلواکـــۍ مـــشري کولـــه. مجیب‌الرحمـــن د بنګله‌دېـــش هېـــواد بنســـټګر بلـــل کېږي.نومـــوړی پـــه ۱۹۷۵ز کال کـــې تـــرور شـــو او حســـینې **۳مـخ**